وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلاً ﴿القراٰن﴾

دَ علم تجوید په موضوع یو منفرد کتاب

# گلدسته دَ تجوید


﴿دَ علم تجوید تړول اهم مسائل په شعرونو کښې﴾




تصنیف

احمدعلی مردانی

فاضل جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوریؒ تاون کراچی





خورونکے

اسلامی ادبی تولنه

یونیورسٹی روډ مردان 0312-9818511


گلدسته دَ تجوید منظوم


تصنیف

احمدعلی مردانی

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

دَ علم تجوید په موضوع یو منفرد کتاب

# ګلدسته دَ تجوید

﴿دَ علم تجوید ټول اهم مسائل په شعرونو کښې﴾

لیکونکے

احمدعلی مردانی

فاضل جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوري ټاون کراچی

خورونکے

اسلامی ادبی ټولنه مردان

# تقریظ

استاذ العلماء والشعراء حضرت مولانا

## محمد ابراهیم فانی رحمۃ اللہ تعالیٰ علیہ

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحيم

الحمد للّٰه وحده والسلام على من لا نبي بعده ! اما بعد په قرآن کریم کښې دَ اللّٰه تعالیٰ جل شانه ارشاد دے : وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا . قرآن کریم دَ اللّٰه تعالیٰ رالیږلے اخیرے کتاب دے چې په خوږ نبی ﷺ حضرت محمد ﷺ ئې نازل کړې دے. ددې عظیم الشان کتاب چې څنګه معنیٰ او تفسیر زده کول ضروری دی دغه شان دا خبره هم ډیره اهمیت لری چې ددې کتاب قراءت او تلاوت دې هم دَ تجوید اوقواعدو مطابق اُوشی . علم التجوید ډیر لوئې علم او فن دے . په دې کښې ددې فن او علم ماهرینو ډیر کار کړې دے او ډیر کتابونه ئې لیکلی دی . موجوده مختصره رساله محترم مولانا احمدعلی مردانی صیب دَ طالب علمانو دَ زده کړے او دَ یادولو دَ پاره په پښتو نظم کښې تیاره کړے ده . ماشاء اللّٰه ډیر په ښهٔ انداز ئې په دې کښې قواعد دَ تجوید دَ شعرونو په شکل پیش کړی دی . زما دُعا ده چې اللّٰه کریم دې دې مختصرے رسالې ته قبولیت عامه ورکړی چې ټول پښتانهٔ ورنه تړې مستفید شی . آمین

محمد ابراهیم فانی

خادم العلم والطلبه بجامعة دار العلوم حقانیه اکوړه خټک

۵ محرم الحرام ۱۴۳۳ھ

بسم اللّٰه الرحمٰن الرحیم

# دَ صاحبِ کتاب یو خوخبري

دَ اللّٰه تعالیٰ شکر واحسان دے چې مونږه ئې دَ حضرت محمد رسول اللّٰه ﷺ په اُمّت کښې پیدا کړو او بیا ئې بل احسان په مونږ دا اُوکړو چې مونږ له ئې په دُنیا کښې دَ دُنیا دَ ژوند تیرولو دَ پاره یو عظیم الشان کتاب قرآن کریم راکړو. چې دَ دُنیا او دَ آخرت دَ هریو مسئلے دَ پاره کافی او شافی دے. دغه قرآن کریم باندې چې څنګ په صحیح لوستلو باندې ډیر اجر وثواب مقرر دے. دغه شان که که یو انسان دغه قرآن کریم غلط اُولی دَ هغه انسان دَ پاره په آخرت کښې سزا او وعید هم شته. ددغې سزا او وعید نه دَ بچ کیدو دَ پاره او لوئې اجر دَ حصول دَ پاره په هر دور کښې علماء او قراء په خپل خپل ځائے زبردست محنت کړې دے. او دا محنت به ترقیامته پورې (انشاء اللّٰه) جاری وی. چې په ښهٔ انداز سره دَ قرآن کریم تلاوت اُوکړے شی او هریو مسلمان په قرآن کریم کښې دَ غلطو نه محفوظ پاتے شی. ما هم ددغې مقصد حاصلولو دَ پاره دا مختصره رساله دَ اللّٰه تعالیٰ په فضل وکرم او توفیق سره تیاره کړې ده. مولیٰ کریم دې ئې ماله او زما والدینو، تولو اُستاذانو او ملګرو له سبب دَ فلاح اُګرځوی.واللّٰه المؤفق والمعین. ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم وتب علینا انك انت التواب الرحیم وصلی اللّٰه تعالیٰ علی خیر خلقه محمد واٰله واصحابه اجمعین.

**ابوالقاسم احمد علی مردانی**

یونیورستی روډ خوره بانډه مردان

## بسم الله الرحمٰن الرحيم

### اولني ليك

پس له حمده له صلوة دا بيان
مبتدی دَ پاره خدايا کړي آسان
مهربان شو کۀ په ما پروديگار
تاسو ته به وړاندې کړمه څه اشعار
مسائل مې دَتجويد کړل څه راجمع
دَ الله نه پرې دَ اجر ساتم طمع
عربی کښې چې ادا کله حرفونه
مخرجونه ياد ساته او صفتونه
دي ته وائی دَ قرآن علمِ تجويد
نۀ دې گران بنۀ دے آسان علمِ تجويد
دَ هر هغه ځائے چې تکے ادا کيږی
په مخرج سره دُنيا کښې به ياديږی
پنځه ټول دی مخوجونه دَ حرفونو
ياد ساته دغه بيان دَ بُنيادونو
جوف او حلق سره کړه ژبه شونډے نورے
دَ خيشوم ورسره نوم شته دے کۀ گورے
دا اُصول دَ مخارجو ټول بيان دی
لازمی دا پيژندل په هر انسان دی

مخارج دي بُنيادونه دَ حرونو
ځان خبر ساته ددغي بُنيادونو
په کوم شان او کيفيت چي حرف ادا شي
صفتونه به تري جوړ ددي دُنيا شي

## دَ علم التجويد اهميت او حکم

هر يو حرف صحيح لوستل دي ضروري
دا لازم دي دَ تجويد په مبتدي
دغه حکم دَ الله ددي کلام دے
معززه دے عالي او چت مقام دے
دغه حکم دَ حديثِ مصطفیٰ ﷺ دے
چي دَ دوجهان دَ پاره نُور رڼا دے
دا سے وائي په دُنيا کښي عالمان
په تجويد سره ښائسته ۀ دغه قرآن

## لحنِ جلي او لحنِ خفي

په دوه قسمه دا غلطے دَ مبتدي دي
په غلطو کښي څۀ جلي دي څۀ خفي دي
غلطي غټه چي وي دغه ده حرامه
په لحنِ جلي يادېږي دا تمامه
صفت پرېدي چي دَ حرف کله بشر
لحن جوړ به تري خفي شي سراسر

دا دوه قسمه دي غلطے دَ هر انسان
کله لُولی چي دُنیا کښي څوك قرآن
بچ ساته ددي غلطو نه خپل وجود
په دُنیا درنه جوړ نشی چي مردود

دَ علم التجوید موضوع

دَ قرآن الفاظ موضوع ده دَ تجوید
ترقی غواړه دَ ربّ نه دَ مزید

په تجوید سره دَلوستلو تعلیم

په تجوید سره قرآن لوستل پکار دی
بے تجویده تهول لوستونکی گناه گار دی
په تجوید سره لوستلو کښي عزت دے
بے له دغي ددُنیا دَ در ذلت دے
په تجوید سره ښائسته ښکاری قرآن
لکه تاج چي وی په سر دَ یو انسان

دَ علم تجوید مقصد او غرض

ښهٔ صحیح دَ حرف ادا لری مقصد
دَ تجوید دے دغه حکم دَ ابد
ښهٔ ښائستهٔ به پري حرفونه دَ قرآن شی
چي تابع څوك دَ تجوید په دي جهان شی
دا قرآن په دے تجوید سره ښائستهٔ دے

دَ دي ژوند دَ پاره ښکلې نمونه ده
هر انسان په دغه علم ښائسته کیږي
لکه ګل دَ باغیچې تر ینه جوړیږي

## دَ تجوید مرتبې

مرتبې دي دتجوید درې دَ جهان
داسې وائي په دُنیا کښي عالمان
یو تدویر دے، بل دے حدر بل ترتیل
عالمانو بیان کړے دے تفصیل
ترتیل نوم دے دَ ښۀ رُوا و اطمینان
تلاوت چې کوي کله مسلمان
حدر وائي تیز لوستلو ته دُنیا کښې
بیان شوے دَ قاریانو په وینا کښې
نۀ وي تیز او په مزه چې تلاوت
دا تدویر دے په دُنیا کښې هر ساعت
مرتبې دُومره تجوید له په دُنیا دي
لکه څنګ چې دري نقطې دَ هریو ثا دي

## دَ تجوید ارکان

لکه څنګ چې دَ اودس فرض څلور دي
دَ تجوید سره ارکان دُومره په کُور دي
مخرجونه دَ حرفونو پیژندل دي

پیـــــژنـــــدل دی دَ صـــفـــــاتـــو او وئیـــل دی
پیـــــژنـــدل دی دَ حـــرفـــونـــو تـهـول احـــکـــام
هـــم عــــادت دَ بـنـــۀ لـــوستـلـــو کـــړه مـــدام
د تـــجـــویـــد دَ پـــاره تـهـول دغــــه ارکــــان دی
پـــه تـــرتیـــب ســـره چـــي بـــره دا بیـــان دی

دَ علم التجوید فائده

څـــوك چـــي لـــولـــی پـــه تـجـویـد سـره قـــرآن
دا رضـــــا ده دَ الـــلّـــه غـــنـــی سبـــحـــان
دَ رســـول الـــلّـــه ﷺ رضـــا شتـــه پـــه دے کـــار
شتـــــه رضـــــا دَ اولیـــــاؤ پـــــه دغـــــي لار
آخـــرت کښـــي ئـــي بـــدلـــه ده نـعـمتـونـــه
مـــلاویـــږی بـــه پـــه دغـــي جـنتـونـــه

دَ تسمیے او تعوّذ بیان

هـــر کـــلـــه چـــي تـــلاوت کـــړے دَ قـــرآن
دري صـــورتـــه یـــادســـاتـــه ددي جهـــان
یـــا بـــه تـــۀ شـوروع کـوے سـرنـه سـورت
یـــا دَ میـــنـــځ نـــه بـــه کـوے تـــۀ تـــلاوت
یـــا بـــه ستـــا میـنـځ کښـــي سورت نـــه ابتـدا وی
دري حـــالتـــه بـــه دادلتـــه کښـــي تـــل ستـــا وی
دَ اول صــــورت نــــه راشــــه ځــــان خبـــر کـــړه

تعوذاو تسمیه دواړه په سر کړه
تعوذ او تسمیه دلته راغلے
دا عمل دے دَ محبوب نبی ﷺ دیر شکلے
دویم صورت کښې تعوذ وئیل بهتر دی
دا کارونه دَ ثواب دَ هر بشر دی
تسمیه کښې هر بشر لره اختیار دے
دَ ثواب دا په کارونو کښې یو کار دے
دریم صورت کښې تسمیه هرځائے راغلے
خبردار تر رینه هر بشار دے هر یو کلے
دَ توبے دَ سورت حکم بل جُدا دے
هغه حکم راشه لاندې دلته دا دے
تسمیه ئې په اول کښې نشته نشته
دا حصه ئې په اول کښې نشته نشته

دَ تعوذ او تسمیه تفصیل

کۀ سورت نه ستاوی چرے ابتدا
تعوذ کړه تسمیے سره ادا
صورتونه ترې جوړېږی تول څلور
وصلِ کُل او فصل کُل نه پس دې نُور
شته فصلِ اول وصلِ ثانی صورت
څلورم ئې دے اُلټه په حقیقت

پــــه خـلـــورو کښـــي چـــي بـــره ذکـــر دا دی
درے صـــورتـــــه پـــــه کښـــي دلتــــه تـول روا دی
وصــــل اول بیـــــا فـــصـــلِ ثـــــانـــی صـــورت
نـــــــــــاروا دے دا صـــــــورت دَ تـــــــلاوت
نـــور ددي نــــــه عـــــلاوه چــــي درے ادا دی
دغـــــه درے واړه هـــرځـــائـــے کښـــي تـل روا دی

دَ مخارجو بیان

دَ مـــخـــــرج مثــــال دَ کُـــور دے دَ بـــنیــــاد
بـــي بُـــنیـــــاده کـــور لیـدلـــي چـــــا آبـــاد
حـلـق یـــا ژبـــه یـــا وی شـــونـډے دَ انسـان
دَ کـــوم ځـــائـــے نـــه ادا کیـــږی چـــي بیـــان
مـــخـــرج دغـــي ځـــائـــے تـــه وائـــی پـــه دُنیــا
دَ قـــــاریـــــانـــو عـــلـــمـــاؤ ده ویـــنـــا
مـــخـــرجـــونـــه تـول دی اُولـــس دَ حـرفـونــو
دا بیـــــان دے یـــقیـــنـــی دَ کتـــابـــونـــو
چــــي ســــاکـــن وی دَ الف ســـره واو یـــــا
جـــوفـــی نـــوم ددي مـــخـــرج دے پـــه دُنیـــا
دَ هـــمـــزي ســـره چـــي جـــمـــع کـــړے بیـــا هـــا
ادا کیـــــږی دوی دَ حـــلـــق پـــــه انتهـــــا
مینـځ دَ حـلـق دے عیـن او حـــا لـــه پـه جهـان

خیال ساتی ددي خبري عالمان
غین او خا دَ حلق آخر نه ادا کیږي
په لفظونو کښې چي کله بیانیږي
دَ آخر ژبې سره لهات چي مل شي
قاف به جوړ تري دَ دُنیا په هر منزل شي
لږ را لاندي هریو قاف نه کاف ادا دے
دا مخرج ددغي قاف نه بل جُدا دے
مینځ دَ ژبې کهٔ تالو سره شي مل
جیم دَ شین سره راځي په دي منزل
یا حرکت لرونکي، دارنګ یا دَلین
ادا کیږي ددي ځائے نه په بهترین
کهٔ دا ژبه ددي ژامي سره مَل شي
جوړیه ضاد تري ددُنیا په هر محفل شي
یو دَ ژبې غاړه بل کړه شمیر انیاب
ثنایا رُباعی دواړه د هر باب
هم اُورے دَ ضواحك شي چي تمام
ادا کیږي ددي ځائے نه هریو لام
یو دَ ژبې غاړه بل تالو کړه بوره
نون ددلته نه ادا کړه ښهٔ په نوره
لږ دننه چي دَ نون نه څوك شي کله

را ادا به شی ددي ځائے نه په خپله
کړه دَ پاس غاښونو بیخ دَ ژبے سر
طاء، تاء، دال تري ادا کیږی په هر در
ژبے سر نه ادا کیږی ظا او ثا
چي شی یو دَ ثنایا غاړه علیا
دا مخرج دَ هریو ذال دے دَ جهان
داسي وائی دَ قرآن دغه قاریان
مینځ چي شی دَ ثنایا دَ ژبے سر
ورته خیال کوه دُنیا کښي په نظر
دا دَ صاد او زا دَ سین دے یو مخرج
دا ښائسته ډیر بهترین دے یو مخرج
مینځ دَ لاندي شونډي دے مخرج دَ فا
چي شی یو دَ ثنایا غاړه عُلیا
کله شونډے چي دا دواړه یو ځائے کیږی
واو او باء سره هر میم تري ادا کیږی
دغُنّے مخرج خیشوم دے بیان شوے
ښائسته دي سره دُنیا کښي قرآن شوے
مخرجونه دَ حرفونو دی دا ټول
بُنیادونه دَ حرفونو دی دا ټول

★★★★★★★★★

## دَ خلے غاښونه

ثـنـایـا اورُبـاعـی څـلـور څـلـور
بیـا انیـاب اوضـواحك شتـه دُومـره نُـور
طـواحـن غـاښـونـه دولـس شتـه پـه شمیـر
نـواجـذ څـلـور چـې نـهٔ شـی درنـه هیـر
شـل غـاښـونـه دَاضـراس شـول دغـه شـان
دوه دیـرش خُـلـه کښـې شـول غـاښـونـه دَانسـان

## دَ صفاتو بیان

دَصـفـت مـعـنـیٰ راغـلـے ده حـالـت
دا یـاد شـوے پـه مـعـنـیٰ دَ کیـفیـت
تـول صـفـات لـری دوه قسـمـه دَ جهـان
لازمـی او عـارضـی دی عـالیشـان
لازمـی نـه جُـدا کیـږی لـه حـرفـونـو
خیـال سـاتـه ددغـې تـولـو صـفـتـونـو
عـارضـی صـفـت وی حـرف کښـې کلـه کلـه
کلـه کلـه دَادَ حـرف نـه بیـل شـی خپـلـه
دا ښـکـلا وی دَ حـرفـونـو دَ جهـان
کـهٔ دُنیـا کښـې ورتـه خیـال اُوکـړی انسـان
پـه دے هـریـو حـرف ښـائستـهٔ لکـه دَگـل شـی
خـوشبـودار مشك وعـنبـر دَ هـر مـحـفـل شـی

خیال کوه ددغي ټولو بنه تمام
داسي وائی په دُنیا کښي خاص او عام

## صفاتِ لازمه

چي دَ حرف سره یو ځائے په هر مکان وي
دا صفت به لازمی ددي جهان وي
چي جُدا ترینه په یو مقام کښي نۀ شی
چي جُدا ترینه په یو کلام کښي نۀ شی
ورته وائی خاص او عام صفت لازم
ورته وائی ټول تمام صفت لازم
یاد کړه اوولس لازمی ټول صفتونه
څنګ چي اُوولس دی یاد شوي مخرجونه
لس صفات درنه هیر نۀ شی متضاد دی
ضد پنځه دَ پنځو دلته کښي ټول یاد دی
ووۀ دی غیر متضاده ټول صفتونه
دا صفات لری جُدا جُدا حرفونه

## دَ صفاتِ متضاده بیان

ټول پنځه دَ پنځو ضد دی متضاد
دا صفات په دي صفت سره دی یاد
لس حرفونه مهموسه دی دَ جهان
نُور راغلی جهریه ټول دَ قرآن

لس حرفونه مهموسه لري صفت
کړه فَحَثّه شَخْصٌ سره سَکَتْ

جهر نوم دَاوچت والی او قوَت دے
نرم والے مهموسه کښې هر ساعت دے

دریم صفت دَ صفتونو نه شدت دے
دا شامل زمونږ سره په تلاوت دے

ټول دی نوولس مجهوره په شمار حرفونه
جهر سره ښائسته کیږی دا لفظونه

دَ شدت معنیٰ سختی ده دَ جهان
داسے وائی په دُنیا کښې عالمان

په اَتو حرفونو کښې صفت شدت دے
مجموعه کښې دا اَجِدُ قَطٍ بَکَتُ دے

بل شِدت ته مخامخ صفت رِخوت شته
نرم والے په کښې پروت په هر جهت شته

لکه خنګ چې دَ مَنْفُوشْ شین دے شین
دا آواز دے دَ نرمے ښه بهترین

دَ رخوت حرفونه شپاړس دی په کُور
دَ شدت او تَوَسُّطْ دی کور کښې نُور

پنځه ټول متوسط دی معتبر
مجموعه دَ توسط ده لِنْ عُمَرْ

نهٔ آواز په کښې بندیږي دَ انسان
بَیْنَ بَیْنَ ورته هم وائي په جهان
په صفاتو کښې پنځم دے استعلا
ووهٔ حرفونو کښې راغلے په دُنیا
خُصَّ ضَغْطٍ قِظْ ددي ده مجموعه
دَ حرفونو استعلاء ده دا حصه
ضد شپږم دَ استعلا دے استفال
ټول لري دوویشت حرفونه دَ کمال
دَ اطباق صفت نه ځان کړه ښهٔ خبر
ټول څلور لري حرفونه په هر در
طا او ظا سره ملګرے صاد او ضاد
مطبقه سره دي دا حرفونه یاد
دَ اطباق ضد انفتاح دے هر ساعت
ټول پنځویشت حرفونه دا لري صفت
په اذلاق صفت کښې شپږ دي ټول حرفونه
فَرْ مِنْ لُبٌّ کښې دي دا صفتونه
دغه ټول متضاده صفات شول تیر
درنه نهٔ شی تلاوت کښې چې دا هیر
خیال ساته ئې تلاوت کښې هرساعت
ښائسته کیږي په دے هر ځائے تلاوت

## دَ صفاتِ لازمه غیر متضاده بیان

لکه څنګ دَ فاتحے چې ووۀ آیات دي
دُومره غیر متضاده له مقامات دي
لکه څنګ چې ووۀ آسمانه دَ جهان دي
دُومره غیر متضاده صفات بیان دي
ټول دي ووۀ منفرده صفات دُنیا کښې
دا دي غیر متضاده هره وینا کښې
پنځو حرفو کښې راغلے قلقله ده
قُطُبُ جَدٌ کښې پرته دا مجموعه ده
یو صفت دے په صفاتو کښې صفیر
ذکر کړے علماء دے په تحریر
زا دَ صاد سره کړه جمع بل کړه سین
دَ صفیر حرفونه درے دي دا حسین
یو صفت دے دَ صفاتو نه تکریر
ریدل دَ ژبے را کښې په تقریر
یو صفت دَ تفشی شته په یقین
دا صفت لري یو حرف هغه دے شین
شین چې کله په دُنیا کښې ادا کیږي
آواز خُله کښې ورسره پوره خوریږي
بسۀ په نرمه ادا کیږي حرف دَ لین

دغه دوه حرفونه دي ښۀ بهترین
واو نه مخکښي چي وي زور دا په هر در
زور دَیاء نه مخکښي وي چي په نظر
هله دا صفت به دلته کښي موندے شي
هله دا صفت بیا دلته کښي راتلے شي
انحراف صفت دَراء سره دَلام دے
چي یو بل ته مائل کیږي نو تمام دے
یو صفت استطالت دے معتبر
دغه ضاد سره موندے شي په هردر
دغه غیر متضاده دي صفتونه
چي ملګري دَدُنیائي دي حرفونه

دَصفاتِ عارضه بیان

عارضي صفت وي حرف کښي کله کله
لکه خنګ چي رَانرے شي او ډبله
ټول لري دغه صفت اته (8) حرفونه
ښائستۀ کیږي دَقرآن په دے لفظونه
لام او راء سره چي میم ساکن کړے نور
نون ساکن سره شُول دا حرفه څلور
دغه رنګ دے میم او نون هر مشدد
دا تنوین دے دغه رنګ هم معتمد

همزه هغه چې لرونکے مخکښې زوروی
واو ساکن نه مخکښې پیښ چې په یو دروی
هر یو څائے کښې چې دَیاء نه مخکښې زیروی
ښۀ قاری دے چې آګاه له دے نه ډیروی

دَ لام قاعدے

کۀ دَ پاك اللّٰه دَ نوم نه مخکښې زوروی
غټ به لام ئې په لوستلو سراسروی
دَ اللّٰه نه مخکښې پیښ راشی چې کله
لام دَ پاك اللّٰه به غټ وائے پخپله
کۀ دَ لام نه مخکښې زیر راشی قرآن کښې
نری وایه دغه لام په ټول جهان کښې
دغه دوه دی مقامات دَ ډك لوستلو
لام دَ پاره دی راغلی په وئیلو
نور دَ دوو( 2 ) نه چې دی څومره مقامات
نری لام هلته راغلې په حالات
ډك وئیلو ته تفخیم دَ جهان وائی
نرے کولو ته ترقیق دغه شان وائی
په وَاللّٰه کښې لام ډېل راځی هر حال
نری لام دَ بِسْمِ اللّٰه لری مثال

★★★★★

## دَرا قاعدے

غـټ لـوستـلـو تـه تـفـخيـم پـه جهـان وائـي
نـري والـي تـه تـرقيـق دغـه شـان وائـي
غـټ لـوستـل مـعـنیٰ راغـلـے دَ تـفـخيـم ده
دا پـه را کښـي دَ رحـمـان او دَ رحيـم ده
نـري کـولـو تـه تـرقيـق پـه دُنيـا وائـي
داسے دلتـه کښـي قـاريـان عـالـمـان ښـائـي
اِرْجِـعُـوٓا ئـي دے مثـال ددي جهـان
را نـري ددي مثـال ده پـه ښـۀ شـان
را نـه مـخـکښـي زور او پيـښ کـۀ پـه دُنيـا وي
دا سـاکـنـه را بـه ډکـه د دُنيـا وي
پـه هـر ځـائے کښـي ورتـه ښـۀ اُوکـړه نـظـر
دَ حـرکـت نـه ئـي کـړه ځـان پـوره خبـر
زور او پيښـس کـۀ وي دَرا دَ سـر دَ پـاسـه
دا لـوستـل بـه غـټ ښـائسته وي ستـا دَ لاسـه
دا دَ شـد سـره راځـي هـم کـلـه کـلـه
بـي لـه زيـره بـه داوي هـر ځـائے ډبـلـه
دا دَ زيـر سـره چـي راشـي پـه يـو در
نـري وايـه دغـه را پـه هـر بشـر
را سـاکـنـه وي سـاکـنـه مـخـکښـي بـلـه

مخکښي زير سره به دا شی نري خپله
را چي وي دَ اِمالے په هر حالت کښي
نري وايه دغه را په تلاوت کښي
زير لرونکے داسي را په هر مقام
چي دَ روم سره اُوديږي شئ تمام
نري وايه دغه را په هر حالت کښي
ياد ساته دغه بيان په تلاوت کښي

## دَ ميم او نون مشدّد قاعده

نون او ميم لري غنّه هغه صورت کښي
مشدّد چي دواړه راشی تلاوت کښي

## دَ ميم ساکن او نون ساکن قاعدے

لکه خنګ چي درے نقطے دَ ثا او پا دي
حالتونه ميم ساکن له دومره دا دي
درے حالته دي دَ ميم ساکن په شمار
يو ادغام دے، بل اخفا او بل اظهار
کۀ دَ ميم ساکن نه وروستو وي ميم بل
نو مُدغم به شی دَ ميم سره ميم خپل
دغني سره به دغه شی لوستلے
دَ ادغام صورت دا هر چا دے ليکلے
کۀ دَ ميم ساکن نه وروستو راشی باء

نـو پــه میـم کښـي بــه غـنّــه وی دَ اخـفـاء
میــم او بـــاء کـــه وروستـــو راشـــي پــه یـو لار
دلتــه کیــږی پــه هـر ځـائـے کښـي تـش اظـهـار
دا حــــالــــت دَ نــون ســاکـن شـولـو تـمـام
قـلــب سـره ئـي مـعـتبــر دی تـول احـکـام

دَ نون ساکن او تنوین قاعدے

اخـفـاء ، قـلـب سـره ، اظـهـار ، ادغـام کـړه نُور
نــون ســـاکـــن لـــری احــوال دغـــه څـلـور
پــه تـنـویـن کښـي تـول جـاری کـړه دا بیـان
نـــون ســـــاکـــن دَ پـــاره حـــکـــم دَ جهــــان
نـون سـاکـن او پــه تـنـویـن کښـي شتـه اظـهـار
کـــه دَ حــرفِ حـلـقـي وروستـو شـي پــه لار
پـــه دوه قـســمــــه بیـان شـوے هـر ادغـام دے
یـو غـنّـــه سـره ، خـالـي ئـي بـل مـقـام دے
یَـنْـمُـوُ تـول څـلـور حـرفـونـــه دَ غـنّـي دی
بـــي غـــنّـــي چـــي لام او را دی وریسـي دی
بـل دوه تـکـو نـــه جـوړ شـوي دے یـو کـور
حـــکـــم خـــلـــقـــو بیـــان کـــړے ورلـــه نُـور
نـون ســاکـن تـنـویـن بــه میـم سـره بـدل شـي
کـــه دَ نــون نـــه پـس وی دا نـو دا بـــه تـل شـي

قلب دے نوم ددې بیان په دې صورت کښې
چې دَنون نه پس وی باء په تلاوت کښې
دغه وخت کښې یو غنّه بله اخفاء ده
دا خبره بیان کړے علماء ده

په نون ساکن او تنوین کښې فرق

نون ساکن لیکلے شی لکه فَمَنْ
تنوین نه شکاره کوی بل ته بدن
نون ساکن وئیلے شی په هر حالت کښې
دَ هر وصل اودَ وقف په صورت کښې
دَتنوین نون به شی وصل کښې لوستلے
دغه وقف کښې هیڅ چا نه دے لیدلے

ادغام او اظهار

لکه څنګ چې تول پنځه ددین ارکان دی
دَادغام دُوه قسمونه په جهان دی
یو مثلین دے دغه تام په مقام دے
دَقسمونو دَادغام نه یو ادغام دے
شته دے قسم مُتَجَانِسین یو بل
دا ناقص او تام راځی په هر محفل
بل ته وائی مُتَقَارِبَیْن تمام
کله دا ناقصه وی ادغام

دَ مخرج صفات سره دَ حرف گفتار
بنهٔ واضحه ته وئیلے شی اظهار

## مدّ اصلي او مدّ فرعي

ټول حرفونه ښهٔ راخکل په خپل مقدار
ورته وائی مدٌ اصلی په گفتار
دا تعریف دے دَ مدٌ اصلی بیان
داسے وائی په دُنیا کښې ټول قاریان
اصلی مد مدٌ ذاتی سره یادیږی
کله کله په طبعی هم بیانیږی
موقوف نه وی اصلی مدّ په څهٔ سبب
بس مقدار دَ اصلی مدّ لری طلب
په سبب باندې موقوف چې وی یو مدّ
ورته وائی دا دَ مدّ فرعی حد
فرعی مدّ لری په جمع دوه اسبابه
دَ همزے سره سکون کړه دَ اعرابه
اصلی هر ځائے هر حالت کښې شی لوستلے
عارضی وی کله کله غرځیدلے

## دَ مدّ متصل او مدّ منفصل بیان

کهٔ سبب دَ فرعی مدّ چرے همزه وی
متصل، منفصل قسمه به دا دوه وی

متصل مدّ دے یاد شوے په واجب
منفصل ته جائز وائی هر طالب

### دَ (ساکن اعتبار سره) دَ مدّ قسمونه

دَ ساکن چې مدّ کښې راشی اعتبار
دوه قسمونه ترے جوړېږی په هر لار
یو لازم دے بل جائز سره دے یاد
دَ ساکن کور دے په دې سره آباد
پنځه قسمه دَ لازم شته په هر در
دوه قسمونه دَ جائز دی معتبر

### دَ مدّ لازم قسمونه

لازم مدّ دے په پنځه قسمه کښې بند
پیداکیږی تلاوت کښې په دې خوند
یو ته وائی کلمی او مثقل
کلمی مخفف دے ورسره بل
یو حرفی مثقل مد شته دے لازم
بل حرفی مخفف یاد ساته دائم
پنځم دے مدّلازم سره دَلین
دا پنځه قسمه دَ مدّشول بهرین

### دَ مدونو مقدارونه

مقدار دې لری حرفونه در په در

توسط دے مینځ دَطول اودَقصر

خپل مقدار سره راځکل دَحرف وينا کښې

دوه حرکته دی دَقصر په دُنيا کښې

زيات راځکل دَطول تعريف دے حقيقت

شپږ حرکته ئې مقدار دے هرساعت

په اصلی مدّ کښې راغلے تل قصر دے

توسط په متصل کښې معتبر دے

منفصل کښې توسط شته دَ جهان

لکه څنګ چې طول لازم کښې دے بيان

په وقفی مد، عارضی کښې طول بهتر دے

توسط سره جائز په کښې قصر دے

## دَ همزے قاعدے

لکه څنګ چې دوه نقطې دَهريو تا دی

دَهمزې دُوه قسمونه تل ادا دی

نۀ پتيږی هرساعت چې شی لوستلے

قطعيه دغه په نوم شی رابللے

په شروع کښې وصليه همزه لوستے شی

مينځ کښې دغه په وينا راغُرځيدے شی

دَاسمونو په شروع کښې الف لام

وصليه همزه لری دغه مقام

زور لرونکي دا همزه په هر مقام وي
رنګ په رنګ دا مثالونو کښي مدام وي
که دريم حرف دَ فعل پيښ لري دُنيا کښي
پيښ په سر به دا همزه شي په وينا کښي
که دريم حرف دَ ټکي زير لري يا زور
زير لري به دا همزه په دغي در
اِسْمٌ ،اِبْنٌ ،اِبْنَةٌ دَ هريو لار
وصليه همزه لري زير په ګفتار
ورسره شته رنګ په رنګ نور مثالونه
دَ همزے وصليے دا دي حالتونه
که همزه دَ فعل وي په ابتدا کښي
دا قطعي دَ زور سره ده په دُنيا کښي
يو صيغه دَ مضارع متکلم ده
دَ واحد صيغه قطعي ده او دائم ده
همزے ټولے قطعيه دي هر ځائے نورے
وصليے نه علاوه چي دا شوے تيرے
پنځه فعله که موجود وي په يو دار
په دريم حرف ورسره پيښ وي په ګفتار
دَ کسرے نه به همزه دا محروم نه وي
همزه دلته وصليه به مضموم نه وي

اِمْشُوا اِیْتُوا اِقْضُوا درے شول دغه شان

اِبْنُوا اِتَّقُوا دوه نور دی دَ جهان

### حروفِ مده

واو نه کله چي پیش راشی مقدم

زیر دَ یا نه مخکښي وی چي هغه دم

دَ الف نه مخکښي زور چي په جهان شی

دغه درے واړه ساکن چي دغه شان شی

په مده حروف سره دغه یادیږی

کتابونو کښي زمونږه بیانیږی

ولاړ زور او زیر دی شمار هم په مده کښي

ولاړ پیش دلته راغلے هر حصه کښي

دغه درے واړو له حکم مقدم دے

دا بیان دَ هر بیان نه ډیر اهم دے

### حروفِ لین

واو او یا نه مخکښي کله چي وی زور

دغه دواړه هم ساکن چي کړی په سر

ورته وائی دوه حرفونه ټول دَ لین

ادا شوی ښۀ په نرمه بهترین

### دَ وقف بیان

ساه کۀ اخلے دا دے وقف شریعت کښي

اُدریـــدل دی دَ قـــرآن پـــــه تــلاوت کښـــې
اُدریـــدل غــواړی انســـان کـلــــه نــا کــلــه
بـــنـدوی هـغـــه قــرآن کـلــه نــا کــلــه
یــو پـــه خپـل اختیـــار ســره انســـان اُدریـــږی
بــل هـغـــه چــې تــلاوت ورتـــه گــرانیـــږی
نـــور کُـــولـــے هـــغـــــه نشـــی تـــلاوت
نـــو مــجبـوره دے ســاه اخـلـــی دا ســاعـت
اول وقفِ اختیـــــــــاری ددې جهــــــــان دے
چــې پــخپـلــــه دَ انســـان ختـم بیـــان دے
بـــل پـــه اضــطـــراری یـــاد دے در پـــه در
مـــجبـــورا کـــوی دا وقف هـــــر بشــــر
کـــهٔ مـعـنـــیٰ پــرې نـــهٔ بدلیـــږی تلاوت کښـې
دغـــــه دواړه دی روا پـــــه شـــریـعـــت کښـــې
پـــه مـعـنـــیٰ بـــانـدې نـظــر چـې دَ انســـان وی
عــلامـــاتــو تـــه ئــې خیـــال چــې دَ قــرآن وی
دا پـــه وقفِ اختیـــاری ســـره یـــادیـــږی
کتـــابـونـو کښـــې پـــه دې نـــوم بیـــانیـــږی
ساه شـی لنډه نورلـوستـل چـې په چا گران شی
گـــران چـــې دهٔ لــــه تــلاوت ددې قــرآن شـــی
وقف دے اضــطـــراری پـــه دې صـــورت کښـــې

خیال کوه د دغې دواړو تلاوت کښې

## دَ وقف قسمونه

تول پنځه قسمه دَ وقف دی بیان
داسې وائی په دُنیا کښې عالمان
یو لازم دے بل مطلق په هر مقام دے
دغه وقف په قرآن کښې خاص او عام دے
جائز هم شته مجوّز په تلاوت کښې
مُرخص پنځم راغلے دے صورت کښې
دا پنځه قسمه دَ وقف دی راغلی
ادا کیږی آیاتونه په دې شکلی
ضروری او لازم وقف دے په میم
اُریدل دی روا شی په زا جیم
اُریدل دی هم په طا باندې راغلی
ادا کیږی آیاتونه په دے شکلی
دائره وقف دَ پاره ځائے په ځائے ده
دغه نخه دَ آیت دَ جدائے ده
قِف سره په هر مقام باندې اُدریږه
بلے ساه سره بیا مخکښې روانیږه
دا بهتر دی دَ قرآن په تلاوت کښې
داسې وائی عالمان په دے صورت کښې

وقف النبی (ﷺ) دے راغلے په قرآن کښې
دغه ځائے دَ اُدریدو دے په جهان کښې
دلته وقف دَ نبیانو سردار ﷺ کړے
وقف دلته کښې نیکانو بار بار کړے
قاف چې کله وی یو اځے په قرآن کښې
وقف دلته بعض ګنړی په دې جهان کښې
دَ سکتے شته په قرآن کښې علامت
بند وُل دی په دے سره تلاوت
ساه چې ماته درنه نشی په جهان
لږ ساعت نه پس جاری کړه خپل بیان
دا تعریف دَ هر سکتے دے په جهان
داسے وائی په دُنیا کښې عالمان
وقفه هم وائی سکتے په قرآن کښې
خیال ساته ددغې هر ځائے هر بیان کښې
صل به کله کله ستا شی په نظر
اُدریدل نه اُدریدل دی برابر
لا مطلب لری چې نشته اُدریدل
تلاوت جاری ساته دلته کښې خپل
په محل دَ وقف اُودیږه صحیح
تام کافی حسن شته وقف هم قبیح

کۀ څوك اُوكړي اعتبار دَ كيفيت

ټول څلور قسمه به جوړ شي دا ساعت

يو ابدال دے بل دے رَوم سره اسکان

دَ اشمام سره شته وقف دغه شان

دَ الله فضل وکرم سره کتاب

ختم شولو ضروري ترينه هر باب

په آخر کښي بيا سلام په محمد ﷺ شه

دا سحر سره مابنام په محمد ﷺ شه

ورسره درود زۀ وايم په نبي ﷺ

چي بُنيادا دے په دُنيا دَ هر ولي

ورسره ئي شۀ په آل تل سلامونه

په ښائست ئي په جمال تل سلامونه

بيا سلام دے په اصحابؓ دَ محمد ﷺ وي

دا سلام دي په هر باب دَ محمد وي

زۀ په سره ختموومه خپل کتاب

ربّه کړه رانه قبول پکښي هر باب

تمت بفضل الله تعالىٰ وبتوفيقه ربنا تقبل منا انك انت السميع العليم .وتب علينا انك انت التواب الرحيم. والحمد لله تعالىٰ على ذالك .وصلى الله تعالىٰ على خير خلقه محمد واٰله واصحابه اجمعين.

جمعة المبارك 11 رمضان المبارك ...ستمبر 2008

وَرَتِّلِ الْقُرْاٰنَ تَرْتِيْلًا ﴿القرآن﴾

دَ علم تجوید په موضوع یو منفرد کتاب

# گلدسته دَ تجوید





﴿دَ علم تجوید ټول اهم مسائل په شعرونو کښې﴾

تصنیف


## احمدعلی مردانی

فاضل جامعة العلوم الاسلامیه علامه بنوریؒ ټاون کراچی





خورونکے

اسلامی ادبی ټولنه

یونیورسټی روډ مردان 0312-9818511


گلدسته دَ تجوید
منظوم
تصنیف
احمدعلی مردانی